تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

[illegible]

محب اسلام [illegible] حضرت علامہ [illegible] شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت [illegible] حنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

[illegible]

## سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

حصہ دوم

ناشر

مدرسہ حذیفۃ الاحناف

## مسئلة دُعا بعد الجنازة :

دعاء بعد الجنازة چې يوه بله مسئله متنازع فيها ده دا تتمه د هغې مخکښو بحث ده اصولو کې مونږ دا ذکر کړل چې دعاء د مأمور به غير موقتي نه ده او په مطلق عن الوقت کې توقيتات په مکلف باندې وي او په داسې امورو کې نسبت د بدعت ورته نه شي کيدې په دغه لحاظ سره دعاء بعد الجنازة هم شوه خپله دعاء بعد الجنازة من حيث ذات حسنه ده څه نباحت نه لري که چا دې ته مکروه ويلې وي يا يې بدعت ويلي وي يا يې بل څه نسبت کړې وي هغه قبيح لذاته به نه وي لغيره به وي لکه مثلاً په قيام باندې سره د بقاء د صفوفو نه بحر الرائق وغيره مکروه کړي ده چې مکروه ان تقوم بالدعاء بعد الجنازة چې ته په دعاء بعد الجنازة باندې قيام وکړې که وايو چې صاحب د بحر الرائق نفس دعاء ته مکروه ويلي ده نو مکروه خو نهي غواړي څه دليل به په نهي دې پيدا کړي .

او که وايو چې نه قيام بالدعاء يې مکروه ګڼلي دې هغه کراهت نه حمل شي په تنزيهي باندې نه تحريم باندې او دليل به ورته داشي چې نوي راتلونکي انسان ګمان د پنځم تکبير ونه کړي لکه مخکې د يو فقيه قول مونږ ذکر کړو چې فرضو پسې صفوف ماتول په کار دي ځکه چې نوي راتلونکي کس ګمان ونه کړي چې جمع باقي ده اقتداء ونه کړي .

نو کوم ځاي کې چې فقهاء نسبت د کراهيت دې دعاء ته کړې ده حمليږي به په قيام بالدعاء باندې په ولاړه دعاء کول او يا که نسبت ورته د کراهيت شوې دې په زمانه د تابعينو کې هم شوې دي نو هغه شورش جوړولو ته چغې او شور چې يو ځاي نه هم يو سړي چغې کړي چې دعاء وکړي او د بل ځاي نه هم چغې کړي چې دعاء وکړي دا شور ما شور په څو مواضعو کې محدثين تابعين مکروه ګڼي .

من جملة د هغې نه وخت د تلاوت القرآن دې په دې کې شور ماشور دا هغوي بد ګڼي من جملة د هغې نه جنازه ده کله به چې جنازه حاضره شوه طريقه معموله د صحابه وو تابعينو سکوت تام وه ډير به غلي وه نبي اکرم ﷺ به دومره غلي وه چې پتې به يې ځان سره شونډې مبارکې خوزولې څه به يې ويل هغه څه دعاء به يې چې کوله هغه به يې هم پټه کوله ښکاره به يې نه کوله .

## حکایت :

ماته یو عالم راغلې وه ددوي هغه ماته یې وویل دعاء بعد الجنازة نبي اکرم ﷺ کړې ده ما ورته وویل دلائل د شرعې څو دي وایي چې هر څو دي هغه خبره خو نه چېرمه دعاء یادوم دا یې کړې ده که نه یې ده کړې ما ورته وویل چې ته ما ته دلائل د شرعي روایه دا ستا جواب په کې شوې دي دلائل د شرعې څو دي وایي دري دي کتاب الله سنت رسول او اجماع.

ما ورته وخندل ورته مې وویل وهابي یې خو داسې بې غیرته شان وهابي یې څکه غیرتي وهابي اجماع هم نه مني هغه وایي کتاب الله او سنت رسول بس دوه مني ته خو بنه یې دري دي کړه نو ما ورته وویل چې کتاب الله دلیل دې وایي چې هاو : ﴿فَإِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ﴾ کله چې فارغ شي له عبادت نه ځان ستړي کړه دعاء کې ما ورته دا ترجمه وکړه څکه یو قول دا هم شته ما ورته وویل دا جنازه عبادت ګڼي که نه یې ګڼي وایي نه دلته خو عبدالله بن عباس رضي الله عنه بله ترجمه کړې نو دومره لالاکان دي حافظې خو ترې خدای تعالی اخیستې دي کنه په دې اوس نه پوهیږي چې زما بحث په بعد السنة کې دي که په بعد الجنازة کې دي.

وایي دلته خو د ابن عباس رضي الله عنه بله ترجمه مروي ده ما ورته وویل څه ده او زما مقصد هم دا وه ما وویل چې دا ترجمه هم دې راته وکړي وایي چې :

اذا فرغت من صلاة المكتوبة فاتعب في الدعاء .

ما ورته وویل دا ترجمه صحیح ده وایي هاو ما ورته وویل د جنازې لمونځ فرض دي که نه دي یو دم کلک ونخته نه وایي نبي علیه السلام کړې او که نه یې ده کړې ما ورته وویل چې دا روایه چې یو اخې فعل الرسول دلیل دنیا کې فعل الرسول نه اخوا کتاب الله دلیل نه دي په دې نزول وکړه روایه چې قول الرسول دلیل نه دي تقریر الرسول دلیل نه دي روایه فعل الرسول دلیل دي دا روایه زه یې هغې کې بیا درته بنایم .

خو داسې اصل جوړ کړه چې د فعل الرسول نه سوا دلیل نه منمه دا ډیر د جاهلانو اعتراض دي چې وایي دا کار رسول الله مبارک ﷺ کړې دي که نه دي کړي دا اعتراض چې چا وکړو نو پوهه شه چې غټ جاهل دي او سه پورې په دې هم نه پوهیږي چې

ادله د شرعې څو دي په دې هم لاخبر نه دي نو چې دا څوک وايي چې ياره دا كار نبي عليه السلام كړي كه نه يې دي كړې دده مقصد دادی چې كړې وي منمه يې كه نه يې وي كړي جائز نه شو نو دا به قول د هغه چا وي چې فعل الرسول به دليل ګڼي او د فعل الرسول نه سوا به هيڅ دليل نه ګڼي ، او داد هيڅا مذهب هم نه دي خپله دده دې قائل د قول مذهب هم نه دي نو استدلال دده دې آيت كريمه نه په دعاء بعد الجنازه كيدې شي .

بالفعل دعاء بعد الجنازة عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ۱۲ صفحه ۱۶۴ د حضرت عبد الله بن ابي بكر روايت ده :

قال لما التقى الناس بموتة . موته كې چې كله جنګ شروع شو .

جلس رسول الله صلى الله عليه وسلم على المنبر . هغه حالات ورته كشف شول .

وكشف له ما بينه وبين الشام فهو ينظر الى معتركهم .

دې كې رد د هغه چا وشو چې وايي دا وحي كيدله وحي نه وه دا دارک كشف وه .

فقال أخذ الراية زيد بن حارثة . جندا حضرت زيد رضي الله عنه لاس كې ونيوله .

فمضى . لاړو .

حتى استشهد . تر دې چې شهيد شو .

راوي وايي :

وصلى عليه . نبي عليه السلام مونځ د جنازې پرې وكړو .

ودعاله . دعاء يې ورته وكړه .

وقال استغفروا له .

تاسو هم ورته بخښنه وغواړي دغه مونځ د جنازې دي او دا دعاء ده وروسته استغفروا له آواز دي اجتماعي دعاء ده .

وقد دخل الجنة وهو يسعى ثم اخذ الراية جعفر بن ابي طالب فمضى حتى استشهد فصلى عليه رسول الله صلى الله عليه وسلم ودعاله وقال استغفروا له وقد دخل الجنة فهو يطير فيها بجناحيه حيث شاء .

امام واقدي په المغازي کې هم دا حديث ذکر کړې جلد ۱ صفحه ۷۶۲.
دارنګې المبسوط للسرخسي جلد ۲ صفحه ۴۴۷ دې کې روايت دي:
عن ابن عباس رضي الله عنه وابن عمر رضي الله عنهما انهما فاتتهما الصلاة على جنازة فلما حضرا.
جنازه ترې تللې وه دوي حاضر شول.
مازاد على الاستغفار له. زيادت يې په استغفار باندې ونه کړو.
دازمونږ احناف کوم ځاى کې رااخلي تکرير د جنازې زمونږ احناف مکروه ګڼي دا
ورنه دلائل پيش کوي که تکرير په کار واى دوي به جنازه مکرره کړې واى.
نو مازاد معنى زيادت يې ونه کړو يعنې تکرير يې ونه کړو فقط دعاء يې وکړه خو دعاء
ممنوعه نه وه جنازې پسې دعاء ممنوعه نه وه هغه يې وکړه هر چې تکرير د جنازې وه هغه
ممنوع وه وي نه کړو نو:
فلما حضرا ما زاد على الاستغفار له.
دا دوه کسان دي يو نه دي هغه اعتراض هم دفعه شو چې دا انفرادي شوې ده نو
انفرادي نه شوه اجتماعي شوه.
وعبدالله بن سلام رضي الله عنه فاتته الصلاة على جنازة. عبد الله بن سلام نه مونځ د جنازې
نوت شو د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه جنازه وه.
فلما حضر. هر کله چې دې راغې.
قال ان سبقتموني بالصلاة عليه فلا تسبقوني بالدعاء له. اوس جنازه شوې ده دعاء پاتې
ده.
دې نه معلوميږي چې په دغه وخت کې جنازې پسې دعاء کيدله آواز ورباندې کوي
چې جنازه کې مو مخکې والي راباندې وکړو جنازه تيره شوه دومره صبر وکړي په دعاء کې
مخکې والې مه کوي دعاء خو را نه مه تيروي.
دا ثابتوي چې دې زمانه کې دعاء کيده بعد الجنازة او جنازه ترې تيره ده او په دعاء
باندې آواز کوي چې دعاء رانه مه تيروي.
بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع جلد ۳ صفحه ۲۸۶ کې هم دا حديث ذکر کړې دي.

يو د جنازې نه مخکې دعاء ده بل د جنازې نه وروسته دعاء ده جنازې نه مخکې دعاء ته تعزيت ويلې شي كه مړي ته بخښنه غواړي او كه د مړي وارث ته دعاء كوي هغه هم جائز ده دليل په هغې باندې روايت د بخاري شريف دي معرب بيروتي چاپ جلد ۵ صفحه ۱۴ ابن ابي مليكة روايت كوي :

انه سمع ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وضع عمر على سريره . عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په كټ واچولې شو چې كله شهيد شو په كټ واچولې شو .

فتكنفه الناس يدعون ويصلون قبل ان يرفع .

تكنف وضع د احد په اخر باندې كنف لره يو چې په بل لاس واړوي رش وړباندې جوړ دي خلكو يو بل باندې لاسونه اړولې وه پرې راټول شوې وه .

يدعون . دعاګانې كولې .

ويصلون . د رحمت دعاء يې كوله .

قبل ان يرفع . مخكې د اوچتيدو د كټ نه .

ګوري رفع د جنازې نه ده شوې چې مقبرې ته يې وړي د هغې نه مخكې دعاء ده .

وانا فيهم . او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي : زه هم په كې ومه ما هم دا دعاء كوله .

فلم يرعني الا رجل اخذ منكبي . وه يرولم مګر دا چې يو سړي اوږې نه ونيولم .

فاذا علي . ګورم چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي .

فترحم على عمر . عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې د رحمت دعاء وكړه . رحمك الله .

او بيا ورته مخاطب شو ورته وايي :

وقال ما خلفت احدا احب الي ان القى الله بمثل عمله منك . نه دې دَي پريښي احب الى الله چې هغه دې د خداى تعالى سره ملاقي شي تر مرګه دې دده په شان عمل عامل وګرځيږي .

منك . ستا نه يا عمر داسې خليفه دې پرې نه ښودلو يعنې ستا هم مثل عمل والا نشته دي .

وايم الله . قسم بالله .

ان كنت لاظن ان يجعلك الله مع صاحبيك .

قسم بالله زما گمان دادی قسم سره تاكيد راغې چې تا به گرځوي خداى تعالى له دوه ملگرو سره د هغوي رفيق به په جنت کې يې.

داد يو چا باره کې حسن ظن سره قول کول جائز دي يقين سره نه شي ويلې او دې پرې قسم کوي دا دليل د تاكيد دي .

وحسبت اني كنت كثيرا اسمع النبي ﷺ يقول. حضرت علي رضي الله عنه وايي ما د نبي عليه السلام نه ډير ځل اوريدلي وه چې داسې به يې ويل .

ذهبت انا وابوبكر وعمر ودخلت انا وابوبكر وعمر وخرجت انا والخ .

داسې الفاظ دي يعنې هره خبره کې به يې دا دري خبرې کولې .

زه ابوبكر او عمر لاړو مونږ دري واړه راغلو ستا ته شو يا لکه هغه بقري چې کومې خبرې کړې وي معجزه کې هلته نبي عليه السلام فرمائلي وه زه ابوبكر او عمر په دې يقين لرو داسې ډيرو خبرو کې به يې دا دواړه ځان سره شريکول دې نه قبل الجنازة قبل رفع سرير دعاء ثابتيږي چې دوي به دغه وخت کې دعاگانې کولې يدعون ويصلون قبل ان يرفع .

او هر چې دفن نه وروسته دعاء ده هغه هم جائزه ده د هغې روايت سنن الكبرى د بيهقي دي جلد ۴ صفحه ۴۵ علقمة بن مرثد راوي ده :

قال صلى علي رضي الله عنه على يزيد بن المكفف النخعي فجاء قرظة بن كعب واصحابه بعد الدفن فأمرهم ان يصلوا عليه .

امر يې ورته وکړو دعاء ورته وکړي دا دعاء بعد دفن شوه د بعد دفن د پاره هغه آيت هم دليل دي .

لا تقم على قبره . مه او دريږه په قبر د منافق باندې دغه د څه شي د پاره دي .

للدعاء دي بعد الدفن قيام للدعاء وللتثبيت نو چې هر كله د منافق په قبر مه دريږه نو خپله ثابته شوه چې د مؤمن په قبر اودريږه .

لا تصل على احد منهم مات ابدا . مونځ د جنازې پرې مه كوه خو په مؤمن يې كوه .

دارنګې د مړي پسې قبل الدفن دعاء کول يا بعد الدفن دعاء کول د هغه په حضور د هغه په غياب ناروا نه دي صحيح مسلم جلد ۷ صفحه ۱۷۰ د ابي عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي هغه يو شخص ته وايي نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته لاړ شه زما سلام ورته ووايه:

وقل له يقول لك ابو عامر استغفر لي. او ما ته بخښنه وغواړه.

قال واستعملني ابو عامر على الناس ومكث يسيراً ثم انه مات فلما رجعت الى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دخلت عليه وهو في بيت على سرير مُرمل (أي مرمول) منسوج وعليه فراش. اثر جوړ کړی دی.

رمال السرير (أي السرير المرمول). دلته اضافت د صفت موصوف ته شوی دي.

بظهر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وجنبيه فاخبرته بخبرنا وخبر ابي عامر وقلت له قال قل له يستغفر لي.

ابو عامر مړ شو خو ما ته يې ويلي وه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته ووايه چې ما ته بخښنه وغواړي.

فدعا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بماء فتوضاء منه ثم رفع يديه ثم قال. نبي عَلَيْهِ السَّلَام او به راوغوښتې اودس يې وکړو بيا يې لاسونه پورته کړل بيا يې وويل.

اللهم اغفر لعبيد ابي عامر. عبيد يې نوم ده ابو عامر يې کنيه ده نو دا نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بعد الوفات دعاء کړې ده.

دارنګې رد المختار جلد ٦ صفحه ۴۰۴:

مطلب في القراءة للميت واهداء ثوابها له صرح علماؤنا في باب الحج عن الغير بأن للانسان ان يجعل ثواب عمله لغيره صلاةً او صوماً او صدقةً او غيرها كذا في الهداية بل في زكاة ايضاً التتارخانية عن المحيط الافضل لمن يتصدق نفلاً ان ينوي لجميع المؤمنين والمؤمنات.

تولو پسې دې وبخښي.

لانها تصل اليهم. ځکه هغوی پسې رسي.

ولا ينقص من اجره شيء . دا اجر نه کمیږي .

هو مذهب اهل السنة والجماعة . داد اهل سنت والجماعة رايه ده .

لكن استثنى مالك والشافعي العبادات البدنية المحضة كالصلاة والتلاوة فلا يصل ثوابها الى الميت عندهما بخلاف غيرها كالصدقة والحج وخالف المعتزلة في الكل .

معتزله په ټولو کې مخالف دي .

وتمامه في فتح القدير اقول مامر عن الشافعي هو المشهور . مشهور قول یې دغه دي .

والذي حرره المتأخرون من الشافعية . د شوافعو متأخرينو فقهاء هغوي وايي .

وصول القراءة للميت . مړي ته يې ثواب رسي .

اذا كان بحضرته . چې د مړي سره وي هغه وخت کې .

او دعاله عقبها . ها ضمير جنازې ته راجع دي ، يا دعاء وشي دې مړي ته وروسته له جنازې نه .

ولو غائباً لأن محل القرآءة تنزل الرحمة والبركة والدعاء عقبها ارجي للقبول .

دا ها ضمير قراءت ته راجع کيږي عقبها قراءت ته راجع کيږي دعاء وروسته له قراءت نه ارجي للقبول ده .

ومقتضاه ان المراد انتفاع الميت بالقراءة لا حصول ثوابها له . دده مقصد دا نه وي چې ځان ته ثواب حاصلوي بلکې مقصد يې دا وي چې مړي ته يې ثواب ورسيږي .

ولهذا اختاروا في الدعاء . اللهم اوصل مثل ثواب ما قرأته الى فلان . که ضمير د عقبها جنازې ته راجع شي بيا دعاء بعد الجنازة کې ثبوت شته او که قراءت ته راجع شي نو دعاء بعد القراءة ده .

دارنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۴ صفحه ۳۵۶ :

عن عبدالله بن ابي اوفى وكان من اصحاب الشجرة فماتت ابنة له . لور یې وفات شوه .

وكان يتبع جنازتها على بغلة خلفها فجعل النساء يبكين فقال .

چا چې دعاء بعد الجنازة ته مکروه ويلې دي قوي علت نه شي پيدا کولې که دا علت وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه ده کړي نو اول خو دا دليل نه دي ځکه دلته روايات کې ثبوت هم راغلې که ثبوت را هم نه شي د يو صحابي قول نه شي پيش کولې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا سې کار نه دي کړي چې روايت العدم شي او دليل وګرځي او که عدم الرواية وي دليل نه دي هغه عدم محض دي پاتې شو چې بيا زمونږ خپلو فقهاو ورته مکروه نسبت کړې دي هغه به حمل شي د بحر الرائق په دغه قول باندې چې :

لايقوم بالدعاء . په دعاء به قيام نه کوي .

او که څوک وايي چې حديث تير شو عبد الله بن ابي اوفی چې قيام کړې دي نو عبد الله بن ابي اوفی قيام کړي خو امام د جنازې دي امام د جنازې خو مخ راتاو کړي څوک پرې ګمان نه کوي چې مونږ د جنازې پاتې ده هغه دې را تاو شي وه دې دريږي خو دا خلک دې نور کيني صفوف دې مات کړي چې نوي خلک د پنځم تکبير ګمان و نه کړي .

او که څوک وايي چې دا علت نه دي بل علت دي هغه دې مونږ ته بل علت پيدا کړي د کراهيت چې هر کله دُعاء حسنه ده د خالق نه که دا څوک وايي چې يوه دُعاء شوي ده بلې ته څه ضرورت دي نو تکرير د دعاء يوه له بلې وروسته څه جرم دي نبي عَلَيْهِ السَّلَام به دري دري دعاګانې کولې ، دا مسئله د دُعاء بعد الجنازة وه .

خلاصه دا چې قول د کراهت به حمل شي په تنزيهي باندې خارجي علت به ورته دغه شي چې قيام باندې وهم واهم و نه کړي د پنځم تکبير او دې نه اخوا بل علت که چا ته معلوم وي هغه دې ويلې شي چې دا علت يې جوړيدې شي .

**سوال :** غائبانه جنازه څنګه ده .

**جواب :** دا مسئله اختلافي ده بين الائمه احناف يې جائز نه ګڼي يعنې مکروه يې ګڼي او نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کړې ده هغه ته کشف بين المسافات شوې وه دليل ورباندې د عبد الله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته د هغه سرير ښکاريده نو هغه غائب نه وه په حاضر جنازه شوې ده .

## مسئلة الدعاء بعد السنة والجنازة ختمه شوه